## لسم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | **زموږ کورنۍ** |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به لوستل، لیکل زده او نوي لغتونه به معنا کړای شي.<br>- زده کوونکي به خپله کورنۍ وپیژني.<br>- زده کوونکي به د خپلې کورنۍ په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به له خپلې کورنۍ سره مینه پیدا کړي. |
| ۳- انګیزوي پوښتنه: | مور، پلار، وروڼه، خویندې او د کورنۍ نور غړي چې په یو ځای ژوند کوي، پر کوم نوم یادیږي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی نوی لوست پرمناسب غږ لولي او نوي لغتونه یې معنا او تشریح کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د کورنۍ په اړوند خبرې اترې وکړي، پایله دې یې نورو ته واوروي.
- ښوونکی دوو زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د تختې مخې ته راشي د (باغ، مرسته، زردالو) کلمې دې په جملو کې استعمال کړي. او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې تنه دې د تختې مخې ته راشي، هر یو دې په وارسره خپله کورنۍ نورو ته ورو پیژني.

| ارزونه | ښوونکی څو زده کوونکو ته دنده ورکوي، چې خپله کورنۍ نورو ته وروپیژني او ارزونه یې کوي. |
|---|---|
| اضافي معلومات | د کورنۍ جوړښت یا رامنځ ته کیدل یوه ټولنیزه اړتیا او یو اسلامي امر دی، موږ د خپل ژوند د دوام لپاره ډول ډول شیانو ته اړتیا لرو، د کورنۍ غړي د هغو په برابرولو کې پر زړه پورې ارزښت لري، یو د بل په مرسته خپل ژوند پرمخ وړي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې د کورنۍ په اړوند څو لنډې جملې پخپلو کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولئ. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## يوولسم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | **خبرې اترې (ډيالوګ)** |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>- زده کوونکي به د ژبې په زده کړه کې د خبرو اترو پر ګټو وپوهيږي.<br>- زده کوونکي به لوستل، ليکل زده او نوي لغتونه به په جملو کې وکارولای شي.<br>- زده کوونکي به د ژبې په زده کړه کې د خبرو اترو د ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به د ژبې په زده کړه کې له خبرو اترو سره مينه پيدا کړي. |
| ۳- انګيزوي پوښتنه: | د دوو تنو ترمنځ سوال او ځواب ته څه ويل کيږي؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

- ښوونکی نوی لوست پر لوړ او مناسب غږ لولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپل منځ لوست ولولي، ښوونکی يې څارنه کوي
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې په خپل منځ کې خبرې اترې وکړي او يو يو ډيالوګ دې تمثيل کړي، ښوونکی مرسته کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي يو دې ورته د کتاب له مخې څو جملې ولولي او هغه بل دې د املا په ډول پر تختې وليکي، نور دې د تختې له مخې پخپلو کتابچو کې وليکي.
- ښوونکی دوو تنو ته لارښوونه کوي چې د ټولګي مخې ته راشي، په وارسره دې په ژبه کې د ډيالوګ د ګټو په اړوند خبرې وکړي، ښوونکی هغه زده کوونکي چې د ټولګي په فعاليتونو کې ډيره او رغنده برخه اخلي تشويق او هڅوي.

| | |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی پر دوو زده کوونکو يو ډيالوګ ترسره کوي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | ښوونکی دې زده کوونکو ته د ژبې په زده کړه کې د خبرو اترو د ارزښت او ګټو په اړوند لا زيات معلومات ورکړي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی زده کوونکو ته دنده سپاري چې پخپلو کتابچو کې په ژبه کې د خبرو اترو د ګټو په اړوند څو لنډې جملې وليکي، بله ورځ دې نورو ته ولولي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## دولسم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱– د لوست موضوع | زموږ ښوونځي |
|---|---|
| ۲– د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>– زده کوونکي به لوستل، ليکل زده کړي او نوي لغتونه به په جملو کې وکارولای شي.<br>– زده کوونکي به ښوونځي وپيژني او په زده کړه کې به يې پر اهميت وپوهيږي.<br>– زده کوونکي به د ښوونځي په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>زده کوونکي به له زده کړې او خپل ښوونځي سره مينه پيدا کړي. |
| ۳– انگيزوي پوښتنه: | تاسې کوم ځای ښې او منظمې زده کړې کوئ؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

– ښوونکی د نوي لوست عنوان پرتختې ليکي او پر لوست پيل کوي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د ښوونځي په اړوند خبرې وکړي، بيا دې پايله د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.

– دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، په وار سره دې يوه يوه نيمگړې جمله پر مناسبو کلمو سره بشپړه کړي، نور دې د تختې له مخې پخپلو کتابچو کې وليکي.

ـــ موږ ډير ښکلي ................ لرو. ـــ موږ د خپل ښوونځي ................. او انگړ پاک ساتو.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او د ښوونځي په اړه دې نورو ته معلومات ورکړئ.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | انگړ: حويلي<br>لوبې: بازي |
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو څخه په زده کړه کې د ښوونځي د اهميت په اړوند پوښتنې کوي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | ښوونکی دې په ښوونځي کې د ونو، گلانو د ساتلو او همدارنگه د سپورتي ډگرونو د اهميت، ارزښت او پاک ساتلو په هکله معلومات ورکړي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې زده کوونکي دې په زده کړه کې د ښوونځي د گټورتيا په هکله څو جملې وليکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

**دیارلسم لوست**

**د تدریس لارښود پلان**

**د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه**

| ۱- د لوست موضوع | **خبرې اترې** |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– زده کوونکي به لیکل، لوستل او نوي لغتونه زده کړي او وبه کولای شي نوي لغتونه په جملو کې استعمال کړي.<br>– زده کوونکي به د زده کړې په بهیر کې د خبرو اترو پر اړتیا او اهمیت وپوهیږي.<br>– زده کوونکي به په زده کړه کې د خبرو اترو د اهمیت او اړتیا پر اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له خبرو اترو او زده کړې سره مینه پیدا کړي. |
| ۳- انگیزوي پوښتنه: | تاسو په ټولګي کې کوم ډیالوگ تمثیل کړیدی؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې یو د بل په مرسته لوست زده کړي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د زده کړې په بهیر کې د خبرو اترو د گټو په اړوند بحث وکړي، پایله دې یې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د تختې له مخې ته راشي، یو د کتاب له مخې ورته څو جملې ولولي، بل دې د املا په ډول پر تختې ولیکي، نور دې تختې له مخې پخپلو کتابچو کې ولیکي.

– ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولګي مخې ته راشي، په وارسره دې د خپلې ژبې په زده کړه کې د خبرو اترو د اړتیا په اړوند نورو ته معلومات ورکړي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | سترې: ستومانه<br>اخلم: رانیسم |
| ارزونه | ښوونکی پر څو زده کوونکو د متن یوه یوه برخه لولي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | په ښوونځي کې ټولګی د زده کړې او لارښوونې ځاي دی، موږ په ټولګي کې د علم او پوهې د زده کړې پر لارو چارو خبرې کوو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې په زده کړه کې د خبرو اترو د اهمیت په اړه څو څو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## څوارلسم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | **باغ** |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به د باغ او ونو پر ګټو وپوهیږي.<br>- زده کوونکي به لوستل او لیکل زده کړي او پر نوو لغتونو به وپوهیږي.<br>- زده کوونکي به د باغ او ونو د ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به له باغ جوړولو او ونو کښېنولو سره مینه پیدا کړي. |
| ۳- انګیزوي پوښتنه: | هغه ځای چې ډېرې او ډول ډول ونې پکې وي پر کوم نوم یادیږي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ یو د بل په مرسته لوست زده کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د باغ او ونو پر ګټو خبرې وکړي او پایله دې یې د هرې ډلې استازې نورو ته ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره پر تختې نیمګړي جملې پر مناسبو کلمو سره بشپړې کړي.
  - د ګلالۍ کورنۍ یو ......... لري. باغ
  - د دوی په باغ کې د .......... بوټي شته. د ګلانو
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخ ته راشي په وارسره دې د باغ او ونو پرګټو خبرې وکړي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | باغ: بڼ<br>پلوري: خرڅوي |
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو پوښتنې کوي او هغوی ارزوي. |
| اضافي معلومات | ښوونکي دې د باغ او ونو روزلو ګټې زده کوونکو ته په ګوته کړي، دوی ته دې ور وښايي چې موږ د ونو له میوو، لرګیو، ګلانو او پاڼو څخه بیلابیلې ګټې اخلو. د ونو کښېنول نه یوازې دا چې زموږ ډېرې اړتیاوې پوره کوي، بلکې د چاپېریال په سمسورتیا کې هم لویه ونډه لري. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د ونو د ګټو په اړه څوڅو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

**پنځلسم لوست**

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | ښوونکی او زده کوونکي |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به خپل ښوونکی وپیژني او د ژبې اصول به زده کړي.<br>- زده کوونکي به لیکل، لوستل او نوي لغتونه زده کړي.<br>- زده کوونکي به خپل ښوونکی نورو ته ور وپیژندلای شي.<br>- زده کوونکي به له خپل ښوونکی او زده کړې سره مینه پیدا کړي. |
| ۳- انگیزوي پوښتنه: | له تاسو سره په ښوونځي کې د زده کړې په بهیر کې څوک مرسته کوي؟ |

**د ښوونکي فعالیتونه**

- ښوونکی نوی لوست پرمناسب غږ لولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې څو زده کوونکي دې د (میوند، دنده، پیل) کلمې په وار سره پر تختې په جملو کې استعمال کړي، نور دې د تختې له مخې په کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د خپل ښوونکي د شخصیت په اړه نورو ته معلومات ورکړي او هغه دې ور وپیژني.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ښه زده کوونکي په اړه نورو ته معلومات ورکړي.

| ارزونه | ښوونکی پرڅو زده کوونکو د متن یوه یوه برخه لولي او ارزونه یې کوي. |
|---|---|
| اضافي معلومات | ښوونکی دې په پام کې ولري چې لایق او تکړه زده کوونکي او هغه زده کوونکي چې په صنفي فعالیتونو کې اغیزمنه برخه اخلي په خوږه ژبه او ځینو الفاظو لکه: آفرین، شاباس، ډېر ښه سره وهڅوي، چې روحیه یې غښتلې او قوي شي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې د څو زده کوونکو نومونه ولیکي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## شپاړسم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | خواړه |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به د خوړو پر ګټو وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به پر لوستلو، لیکلو او نوو لغتونو وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به د خوړو د ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به د خوړو په ساتلو او له ګټورو خوړو له ګټې اخیستنې سره مینه پیدا کړي. |
| ۳- انګیزوي پوښتنه: | تاسو په کور کې له څه ډول خوړو څخه ګټه اخلئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی د نوی لوست عنوان پرتختې لیکي او نوي لغتونه ورته تشریح کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د ګټورو او صحي خوړو په اړه خبرې وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکی دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او خپل سیمه ییز خواړه دې نورو ته ورو پیژني.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولګي مخې ته راشي د خوړو د ګټو په اړه دې نورو ته معلومات ورکړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي د تختې مخې ته راشي او د څو ډوله خوړو نومونه دې پرتختې ولیکي.

| ستونزمنې برخې | اړتیا: ضرورت<br>پایښت: دوام |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی پرڅو زده کوونکو د متن یوه یوه برخه لولي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | موږ باید تل خپل خواړه پاک وساتو او هغسې خواړه وخورو چې زموږ د بدن اړتیاوې پوره کولای شي، د بیلګې په توګه له تازه میوو او ترکاري څخه ډیره ګټه واخلو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې د سیمه ییزو خوړو په هکله څو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

# اوولسم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | غنم |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به غنم وپېژني او پر ګټو به یې وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به لوستل، لیکل زده کړي او پر نوو لغتونو به وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به د غنمو د کرلو، تربیې او ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به د غنمو له کرلو، تربیې او ګټې اخیستنې سره مینه پیدا کړي. |
| ۳- انګیزوي پوښتنې: | آیا تاسې پوهېږئ چې غنم څه ډول کرل کېږي؟<br>څوک ویلای شي، ډوډۍ له څه شي څخه لاسته راځي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی د نوي لوست په اړوند معلومات ورکوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې په وار سره پر لوړ او مناسب غږ د لوست یوه یوه برخه ولولي او نور دې پسې تکرار کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د غنمو د کرلو او ګټو په هکله خبرې وکړي، بیا دې د هرې ډلې استازي لومړۍ د کرلو په هکله او بیا د غنمو د ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي د (کرل، پخیدل، اوړه) کلمې دې د تختې پر مخ په جملو کې استعمال کړي، نور دې د تختې له مخې پخپلو کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د ټولګي، مخې ته راشي په وار سره دې د غنمو په اړوند خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

| ستونزمنې برخې | ګټور: فایده مند<br>پالنه: روزنه او ساتنه |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی د خپلو یادښتونو د کتلو او له زده کوونکو څخه د پوښتنو په کولو سره ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | ښوونکی دې زده کوونکي دې ته وهڅوي، چې له پلرونو او د کورنۍ له هغو غړو سره چې په کرونده کې کار کوي، مرسته وکړي، ښوونکی باید د غنمو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې د غنمو د ګټو په اړوند خپل نظر ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

**اته لسم لوست**

**د تدرېس لارښود پلان**

**د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه**

| | |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **خبرې اترې (ډيالوګ)** |
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>- زده کوونکي به د ژبې په زده کړه کې د خبرو اترو پر ګټو او ارزښت وپوهيږي.<br>- زده کوونکي به نوي لغتونه، لوستل او ليکل زده کړي.<br>- زده کوونکي ته په ژبه کې د خبرو اترو د ګټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به د ژبې په زده کړه کې د خبرو اترو له تمثيل څخه پر زړه پورې ګټه واخلي او مينه به ورسره پيدا کړي. |
| ۳- انګيزوي پوښتنه: | د ژبې په زده کړه کې له کومې طريقې يا لارې ګټې اخيستل ډېر ګټور دي؟ |

**د ښوونکي فعاليتونه**

- ښوونکی نوی لوست لولي او په اړه يې څرګندونې کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې يو د بل په مرسته لوست زده کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې پخپل منځ دوه دوه تنه کې خبرې اترې وکړي او يو ډيالوګ دې تمثيل کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وارسره لاندينۍ نيمګړي جملې پر مناسبو کلمو سره ډکې کړي.

  زما ورو په نهم ....... دی.

  ستاسو سره په لوست کې ....... کوي؟
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وارسره د ژبې په زده کړه کې د خبرو اترو پر اهميت خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونيسي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | بوخت: لګيا    په مخه: به رويت<br>غرمه: چاشت، دولس بجې |
| ارزونه | ښوونکی پر دوو زده کوونکو دوې دوې جملې پر تختې ليکي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | خبرې اترې بايد پر زده کوونکو تمثيل کړي، ترڅو چې په ژبه کې د خبرو اترو پر اهميت ښه وپوهيږي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې د ژبې په زده کړه کې د خبرو اترو پر اهميت څوڅو جملې وليکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## نولسم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | غاښونه |
| --- | --- |
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به د پاکو غاښونو پر ګټو وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به لوستل، لیکل زده کړي او د لوست پر نوو لغتونو به وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به د پاکو غاښونو د ګټو په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به له پاکو غاښونو سره مینه پیدا کړي. |
| ۳- انګیزوي پوښتنه: | په روغتیا کې د بدن د کومو غړو پاک ساتل ډیر اړین دي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي یو دې د (پېرزوینه، ژوولو، غاښونه) کلمې پر تختې ولیکي، هغه بل دې د تختې پر مخ په جملو کې استعمال کړي، نور زده کوونکي دې یې د تختې له مخې پخپلو کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي او د نظافت ساتلو په اړه دې خبرې وکړي، نور دې غوږ ونیسي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د غاښونو د پاکو ساتلو په اړه خبرې وکړي.

| | |
| --- | --- |
| ستونزمنې برخې | پیرزوینو: لورونو<br>ژوولو: میده کولو |
| ارزونه | ښوونکی پر څو زده کوونکو یوه یوه جمله د املأ په ډول لیکي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | د اسلام د مبین دین له لارښوونو سره سم د غاښونو پاک ساتل ډیر ثواب لري، ځکه له یوې خوا د غاښونو بوی ورکېږي او بل چاته زیان نه رسوي او له بله پلوه یې غاښونه روغ او سالم پاتې کېږي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې د پاکو غاښونو د ګټو په اړوند خپل نظر ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## شلم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | **ښه زده کوونکي** |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>- زده کوونکي به د ښه زده کوونکي پر صفتونو وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به لوستل، ليکل زده کړي او نوي لغتونه به په جملو کې وکاروي.<br>- زده کوونکي به د ښه زده کوونکي د ځانګړتياوو په باب نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به د ښه زده کوونکي له ځانګړتياوو سره مينه پيدا کړي، هڅه به وکړي چې د ښه زده کوونکي خواص په ځان کې پيدا کړي. |
| ۳- انګيزوي پوښتنه: | هغه زده کوونکي چې ښه درس وايي او کورنۍ دنده پر خپل وخت ترسره کوي په کوم نوم سره يادېږي؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی نوی لوست لولي او نوي لغاتونه معنا کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
- دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د لوست يوه يوه برخه دې پر مناسب غږ ولولي، نور زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره د ښه زده کوونکي په هکله خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونيسي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره پر تختې د ښه زده کوونکي په هکله يوه يوه جمله وليکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وارسره د ښه زده کوونکو څوڅو نښې نورو ته واوروي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | سپکې سپورې: يو چې او بې ځايه خبرې او يا هم ښکنځل ونډه: برخه |
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو څخه پوښتنې کوي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | ښه زده کوونکي ښه اخلاق لري، له هر چا سره مينه ناک او ښه سلوک کوي، خپل کارونه پر خپل وخت تر سره کوي، له چا سره جنګ او جنجال نه کوي. ښوونکو او زده کوونکو ته درناوی کوي، د ښوونځي په پاکۍ کې رغنده ونډه اخلي، له اړو کسانو سره مرسته کوي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې د ښه زده کوونکي څو ځانګړتياوې پخپلو کتابچو کې وليکي، بله ورځ دې يې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## یوویشتم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱– د لوست موضوع | څاله |
|---|---|
| ۲– د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسېږي.<br>– زده کوونکي به څاله وپېژني او د الوتونکو له ژوند سره به بلدتیا پیدا کړي.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل او نوي لغتونه زده کړي.<br>– زده کوونکي به د څالو او د الوتونکو د ژوند په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له الوتونکو سره مینه پیدا کړي او زیان به ورته نه رسوي. |
| ۳– انګیزوي پوښتنه: | کوم الوتونکي ستاسو په کورونو کې څالې جوړوي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی پر لوړ او مناسب غږ لوست لولي او نوي لغاتونه معنا کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې لوست پخپل مینځ کې ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي یو دې د (پایښت، دوام، پټ) کلمې پر تختې ولیکي، هغه بل دې یې په جملو کې استعمال کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې تنه دې په وار سره د متن یوه یوه برخه پر مناسب غږ ولولي، نور ټول زده کوونکي دې ورپسې تکرار کړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې، د څالو د ورانولو او د هغه د زیانونو همدارنګه د څالو د نه ورانولو په هکله نورو ته څرګندونې وکړي، ښوونکی مرسته او څارنه کوي.

| ستونزمنې برخې | پایښت: دوام     چیچې: نېش وهي     دنګو: لوړو |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی پر څو تنو زده کوونکو د متن یوه یوه برخه لولي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د هغه الوتونکو مرغانو چې د دوی په کورونو یا له کورونو څخه د باندې څالې جوړوي او ژوند کوي، په څالو کې لاس ونه وهي ځکه کېدای شي په هغه کې ماران یا نور حشرات شتون ولري او څالې ته د لاس وروړلو پر وخت یې و چیچي او د مړینې لامل شي، نو هیڅکله په څالو کې لاس ونه وهئ. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې الوتونکو ته د زیان نه رسولو او څالو د نه ورانولو په هکله څو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## دوه ویشتم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | کوتره او مېږی |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به د کېسې پر مفهوم او ارزښت وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به په کېسه کې د نیکی پر بدل هم وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به لوستل، لیکل زده او د نوو لغتونو پر معنا به وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به وکولای شي چې نوي لغتونه په جملو کې استعمال کړي.<br>- زده کوونکي به له کېسو او نیکي کولو سره مینه پیدا کړي او اړو کسانو سره به یې د نیکۍ کولو احساس پیاوړی شي. |
| انگیزوي پوښتنه: | تاسو کله دې کېسې ته ورته نیکي له چا سره کړېده؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی نوی لوست لولي او پر مفهوم یې خبرې کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې یودبل په مرسته لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپلو ډلو کې د کېسې پر مفهوم خبرې وکړي، پایله دې یې د هرې ډلې استازي نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د (کوتره، میږي، ډوب، پاڼه) کلمې په وار سره پر تختې په جملو کې استعمال کړي، نور زده کوونکي دې هغه پخپلو کتابچو کې د تختې له مخې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د ټولگي مخې ته راشي په وار سره دې د کېسې د مفهوم او مطلب په اړوند نورو ته معلومات ورکړي.
- ښوونکي لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وارسره د خپلې سیمې د ځینو الوتونکو نومونه پرتختې ولیکي.

| ستونزمنې برخې | ډوب: غرق<br>بچ: ژغورل<br>پاڼه: پښه یا برگ |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکی پر څو زده کوونکو یوه یوه جمله پر تختې لیکي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي باید د کوترې په شان د لوی الله جل جلاله له اړو او کمزورو مخلوقاتو سره مرسته وکړي، چې الله جل جلاله یې په دنیا او اخرت کې بدل او اجرونه ورکړي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې د کتاب کېسې ته ورته یوه یوه لنډه کېسه پخپلو کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې په ټولگي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## درویشتم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | **نوی زده کوونکي** |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>– زده کوونکي به نوی زده کوونکي وپيژني او مرسته به ورسره وکړي.<br>– زده کوونکي به لوستل، ليکل زده کړي او نوي لغتونه به په جملو کې استعمال کړای شي.<br>– زده کوونکي به له نوي زده کوونکي سره بلد شي او وبه کولای شي هغه نورو ته ور وپيژني.<br>– زده کوونکي به د دوی ټولگي ته د نوي زده کوونکي د راتلو پر لاملو وپوهيږي او مينه به يې ورسره پيدا شي. |
| ۳- انگيزوي پوښتنه: | آيا تاسو له نوي زده کوونکي سره څه مرسته کړيده؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی نوی زده کوونکی نورو ته ورپيژني او له هغه سره د مرستې په اړوند سپارښتنې کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې يو د بل په مرسته لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې له نوي زده کوونکي سره د مرستې په هکله بحث وکړي، پايله دې يې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو کابچو کې د (سترې، کپتان، ژمنه) کلمې په کتابچو کې په جملو کې وکاروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې څو زده کوونکي دې په وار سره نوي زده کوونکی نورو ته وروپيژني، ښوونکی څارنه کوي.
- ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي په وارسره خپل ځايونه نوي زده کوونکي ته ورو پيژني.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | کپتان: لومړۍ درجه (اول نمره) چې په خپل ټولگي د زده کوونکو مشري کوي.<br>پرون: تېره ورځ |
| ارزونه | ښوونکی له څو زده کوونکو د نوي لوست د يوې يوې برخې پوښتنه کوي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | ښوونکی ټول زده کوونکي دې ته خبر وي، چې مرسته کول د اسلام د سپيڅلي او مبين دين د لارښوونو له مخې ډېر ثواب او اجرونه لري. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې له نوي زده کوونکي سره د مرستې په هکله څو جملې پخپلو کتابچو کې وليکي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## څلرویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| | |
|---|---|
| ۱- د لوست موضوع | **زده کوونکي په کور کې** |
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به په کور کې د یوه زده کوونکي پر کړو وړو وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به لوستل، لیکل زده کړي او پر نوو لغتونو به وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به په کور کې د یوه زده کوونکي د کړو وړو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به په کور کې پر خپلو مسؤولیتونو وپوهېږي او مینه به یې ورسره پیدا شي. |
| ۳- انگیزوي پوښتنه: | تاسو په کورونو کې کوم کوم کارونه ترسره کوئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی په کور کې د زده کوونکو مسوولیتونه په گوته او نوی لوست پر لوړ او مناسب غږ لولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې یو د بل په مرسته لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول دې پخپلو ډلو کې د زده کوونکو د کړو وړو په هکله خبرې وکړي، پایله دې یې د هرې ډلې استازي نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي په وارسره دې یو تن د (اودس، لمونځ، ډوډۍ) کلمې پر تختې ولیکي او بل دې په جملو کې استعمال کړي، نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره په کور کې د زده کوونکو د کړووړ په اړه نورو ته خبرې وکړي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې درې زده کوونکي دې پر میز له پرتو کارتونو څخه یو یو پورته او پرتختې دې ولیکي. او به اړه دې خبرې وکړي.

| | |
|---|---|
| ستونزمني برخې | ستونزه: مشکل<br>اړتیا: ضرورت |
| ارزونه | ښوونکی له خپلو یاد داشتونو څخه په گټې اخیستنې سره د زده کوونکو ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | کورنۍ لومړنۍ او کوچنۍ ټولنه ده، زده کوونکي باید د کورنۍ ټولو غړو ته په سلام ورکولو بلد شي، دا له یوې خوا مینه او محبت رامنځ ته کوي، له بله پلوه مو د اسلام د سپیڅلي دین له ارزښتونو سره سم عمل ترسره کړی چې د دنیا او اخرت گټې لري. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې په کور کې د زده کوونکو د دندو او مسؤولیتونو په هکله څو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولگي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## پنځه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | سېلاب |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>- زده کوونکي به سېلاب وپېژني او د راوتلو په لاملونو به یې وپوهیږي.<br>- زده کوونکي به لوستل، لیکل زده کړي او نوي لغتونه به په جملو کې وکارولای شي.<br>- زده کوونکي به د سیلاب او له هغه څخه د ځان ساتلو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به له سیلاب څخه پر ځان ساتلو وپوهیږي او و به کولای شي له سیلاب څخه ځان وساتي او له دې سره به یې مینه پیدا شي. |
| ۳- انگیزوي پوښتنه: | له باران وروسته د ډېرو او ګړندیو اوبو راوتلو ته څه وایي؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی لوست لولي او له سېلاب څخه د ځان ساتلو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکوي.
- ښوونکي لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې په خپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکي لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د سېلاب د زیانونو په هکله بحث وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازی نورو ته واوروي.
- ښوونکي لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د تختې مخې ته راشي یو دې ورته دکتاب له مخې دوې جملې ولولي، هغه بل دې د املا په توګه پر تختې ولیکي.
- ښوونکي لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې د سېلاب او د هغې د زیانونو په اړه خبرې وکړي.
- ښوونکي لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، په وارسره دې له سېلاب څخه د ځان ساتلو په اړوند نورو ته خپل نظر ووایي.

| ستونزمنې برخې | کرنیزې ځمکې : هغه ځمکې چې پکې یو څه کرل کیږي.<br>پایله : نتیجه |
|---|---|
| ارزونه | ښوونکي له ټو تنو زده کوونکو څخه له سېلاب څخه د ځان ساتلو په اړه پوښتنې کوي او هغوی ارزوي. |
| اضافي معلومات | د ډېر اورښت په پایله کې اوبه راوځي، سېلاب جوړوي، خو ډېر سېلابونه د اوړي په موسم کې رامنځ ته کیږي، سېلاب پخپل بهیر کې ودانۍ، ونې او بوټي هر څه له ځان سره وړي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې له سېلاب څخه د ځان ساتلو په اړوند څوځو جملې ولیکي، بله ورځ دې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## شپږ ويشتم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدريس وخت: د يوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | مرسته |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنيزې<br>• مهارتي<br>• ذهنيتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>- زده کوونکي به د لوی الله ﷻ له مخلوق سره د مرستې کولو پر گټو وپوهېږي.<br>- زده کوونکي به لوستل، ليکل او نوي لغتونه زده کړي.<br>- زده کوونکي به له نورو سره د مرستې کولو د گټو په اړوند نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>- زده کوونکي به د لوی الله ﷻ له مخلوق سره له مرستې کولو څخه خوند واخلي او مينه به يې ورسره پيدا شي. |
| انگيزوي پوښتنه: | زموږ تاسې په شاوخوا کې اړ کسان څه شي ته اړتيا لري؟ |

### د ښوونکي فعاليتونه

- ښوونکی لوست لولي او له اړو کسانو سره د مرستې کولو د دنيا او اخرت اجرونه په گوته کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول دې يودبل په مرسته لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې له اړو کسانو د مرستې کولو پر گټو او ثوابونو خبرې وکړي، پايله دې يې د هرې ډلې استازي نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې په وار سره پر تختې ليکل شوي نيمگړې جملې پر مناسبو کلمو بشپړې کړي، نور دې يې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې وليکي.

زرغونه او ملاله ښوونځي ته ...... دي.

لوست ....... کيږي.

- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه تنه دې د ټولگي مخې ته راشي، په وار سره دې د مرستې د گټو په اړه نورو ته معلومات ورکړي، ښوونکی مرسته او څارنه کوي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | لويدل: غورځيدل<br>روان: تلل |
| ارزونه | ښوونکی له ټو تنو څخه پوښتنې کوي او پر ټو نورو د متن يوه يوه برخه لولي او ارزونه يې کوي. |
| اضافي معلومات | الله ﷻ فرمايي: تاسې په تقوا او نيکو کارونو کې مرسته وکړئ، مرسته او کومک مه کوئ په هغو کارونو کې چې گناه او د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د قانون مخالف وي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې د مرستې کولو د گټو او ثواب په هکله څو جملې وليکي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

# اووه ویشتم لوست

## د تدریس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | ژوند |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>• پوهنیزې<br>• مهارتي<br>• ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسیږي.<br>– زده کوونکي به د ژوند پر مفهوم او ارزښت وپوهېږي.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل زده کړي او پر نوو لغتونو به وپوهېږي.<br>– زده کوونکي به د ژوند د مفهوم په اړه نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به له ژوند سره مینه ولري، د خپل راتلونکي ژوند د ښېګڼو لپاره به هلې ځلې وکړي. |
| ۳- انګیزوي پوښتنه: | تاسې د خپلې راتلونکي په باب څه فکر کوئ؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی پرمناسب غږ لوست لولي او د ژوند د ارزښت په باب خبرې کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي پخپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپلو ډلو کې د ژوند او خپلې راتلونکي د ښېګڼو په اړه خبرې وکړي، بیا دې د هرې ډلې استازي خپله پایله نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او پر تختې لیکل شوي نیمګړي جملې دې په مناسبو کلمو بشپړ کړي، نور دې په کتابچو کې ولیکي.
  * ریښتیا هم ژوند ځانګړې ..................... لري. * انسان یو ټولنیز ..................... دی.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي په وار سره دې د ژوند د ارزښت په باب خبرې وکړي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | مخلوق: ټول موجودات لوی خدای ﷻ پیدا کړي او ټول د هغه لوی ذات مخلوق دی. |
| ارزونه | ښوونکی د خپلو یاد داشتونو له مخې په ټولګي کې د لوست ارزونه کوي. |
| اضافي معلومات | مور باید په ټولنه کې د ژوند کولو لارې چارې زده کړو او د راتلونکي ژوند د ښېګڼې او ښکلا لپاره د خپلو هڅو او هاند یادونه وکړو. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی لارښوونه کوي، چې ټول زده کوونکي دې د خپل راتلونکي ژوند د ښه کولو لپاره د خپل هوډ او تصمیم په اړه څو جملې ولیکي بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |

## اته ویشتم لوست

## د تدرېس لارښود پلان

## د تدریس وخت: د یوې اونۍ درسي ساعتونه

| ۱- د لوست موضوع | له ناروغیو مخنیوی |
|---|---|
| ۲- د زده کړې موخې:<br>● پوهنیزې<br>● مهارتي<br>● ذهنیتي | زده کوونکي به د لوست په پای کې لاندې موخو ته ورسيږي.<br>– زده کوونکي به د ناروغیو د مخنیوي پر لارو چارو وپوهېږي.<br>– زده کوونکي به لوستل، لیکل او نوي لغتونه زده کړي.<br>– زده کوونکي به د ناروغیو د مخنیوي په هکله نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– زده کوونکي به د ناروغیو د مخنیوي پر لارو چارو د پوهېدو له امله د ناروغیو له مخنیوي سره مینه پیدا کړي. |
| ۳- انګیزوي پوښتنه: | تاسو له کومو ناروغیو څخه مخنیوی کړیدی؟ |

### د ښوونکي فعالیتونه

- ښوونکی لوست لولي او د ناروغیو د لاملونو او مخنوي په اړه خبرې کوي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې زده کوونکي دې پخپل منځ کې لوست ولولي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې ټول دې پخپلو ډلو کې د ناروغیو د مخنیوي په اړه بحث وکړي، پایله دې د هرې ډلې استازي نورو ته واوروي.
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې دوې جملې ورته ولولي، هغه بل دې د املأ په ډول پر تختې ولیکي، نور دې د تختې له مخې پخپلو کتابچو کې ولیکي.
- ښوونکی دوه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راغواړي، چې په وار سره د ناروغیو د مخنیوي په هکله خبرې وکړي
- ښوونکی لارښوونه کوي چې دوه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راشي په وارسره د ناروغیو د را پیدا کیدو د لاملونو په باب خبرې وکړي.

| | |
|---|---|
| ستونزمنې برخې | خسا: ګنده<br>روغتیا: صحت |
| ارزونه | ښوونکی پر دوو زده کوونکو یوه یوه جمله پر تختې لیکي او ارزونه یې کوي. |
| اضافي معلومات | موږ باید د ناروغیو د له منځه وړلو او مخنیوي لپاره هر ډول هڅې وکړو خپلو ماشومانو او اړوندانو ته د بېلابیلو ناروغیو واکسین تطبیق کړو، د خپل بدن، جامو، کور، کوڅې او سیمې په پاکو ساتلو کې کوښښ وکړو، پر لارو او کوڅو کې د ناولو خوراکي توکو له خوړلو ډډه وکړو، ترڅو له بېلابېلو ناروغیو مو مخنیوی کړی وي. |
| کورنۍ دنده | ښوونکی سپارښتنه کوي چې زده کوونکي دې د ناروغیو د مخنیوي په هکله څو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي. |
| ماخذونه | درسي او لارښود کتابونه |